## سوال: د الله نه سيوا د بل چاڅخه مدد غوښتل څنګه دي؟

جواب: د الله تعالى نه بغير بل هيڅوک نه چاته څه ګټه ورکولی شي او نه نقصان، د مخلوق د کوم يو فرد نه د داسي شيانو غوښتل شرک دی څه چې د دوي په اختيار او واک کي نوي، او بيا مړي چې هغوي نه اوريدلی شي او نه ځواب ورکولی شي .

الله تعاليفرمايي((وَلَا تَدْعُ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ فَإِن فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ الظَّالِمِينَ (106) .

اود الله تعالی نه سيوا بل داسي هيچاته اواز مه کوه چې هغه تاته نه فائده درکولی شي اونه نقصان، که چيري تا دا کار وکړو نو ته به په ظالمانو کي شمار شي .

پدي ايات کي الله تعالی ددي څخه منعه کړي، چې څوک دي غيرالله د خپل حاجت پوره کولو لپاره يا مشکل لري کولو لپاره را ؤبلي.

الله تعالی دا هم راته ويلي چې د الله نه سيوا هيڅوک چاته نه فائده رسولی شي او نه نقصان .

الله تعالی فرمايلي (( وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ (107) .

که چيرته تا الله تعالی په کوم مصيبت مبتلاکړي، نو د هغه مصيبت لري کونکی د الله تعالی نه سيوا هيڅوک نشته .

په صحيح حديث کي راځي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم ابن عباس رضي الله عنه ته وفرمايل :واعْلَمْ : أنَّ الأُمَّةَ لو اجْتَمَعتْ علَى أنْ يَنفَعُوكَ بِشَيءٍ لَمْ يَنْفَعُوكَ إلاَّ بِشَيءٍ قَدْ كَتَبهُ اللهُ لَكَ.

پدي خبره ځان ښه پوهه کړه ؛ که چيرته ټول اُمت ددي لپاره راجمعه شي چې تاته څه فائده درکړي نو تاته هيڅ فائده نشي درکولی ؛ مګر که الله تعالی نه څه درته ليکلي وي .

د قرآن كريم په يو بل ځاي كي راغلي:(( إِنَّ الَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لا يَمْلِكُونَ لَكُمْ رِزْقًا فَابْتَغُوا عِندَ اللَّهِ الرِّزْقَ وَاعْبُدُوهُ وَاشْكُرُوا لَهُ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ (عنكبوت 17) )).

(( تاسي چې د الله تعالی نه سيوا د كوموخلكوعبادت كوئ نوهغوي يقيناً ستاسي لپاره د رزق وركولواختيار نلري، نو تاسي د الله تعالی څخه رزق وغواړئ او د هغه عبادت وكړئ )).

يو بل ځاي كي الله تعالى فرمايي:(( وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُو مِن دُونِ اللَّهِ مَن لاَّ يَسْتَجِيبُ لَهُ إِلَى يَومِ الْقِيَامَةِ وَهُمْ عَن دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ (5) وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاء وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ (الاحقاف ۵، 6) )).

او د هغو خلكو نه ځوک زيات بې لاري دي ؛ چې هغوي د الله نه سيوا بل داسي چاته ( د مدد او مرستي) اوازكوي چې تر قيامته پوري دده دعاء نشي قبلولی ؛ بلكه هغه ددوي د بلني نه هم ناخبره دي،او كله چې ( د قيامت په ورځ ) ټول خلک راجمع كړئ شي نو دوي به هغوي لره دښمنان شي او دهغوي د عبادت نه به انكار كونكي شي .

ددي ايات نه دا هم ثابته شوه چې غيرالله ته د حاجت پوره كولو لپاره اوازكول ( په حقيقت كي ) د هغه عبادت ده، حالانكه انسان صرف د الله تعالی د عبادت لپاره پيداشوی .

يو بل ځاي د الله تعالى داسي ارشاد دی: أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ (النمل : ۶۲)

(( د مضطر ( بې وسه او سخت مجبوره ) كس دعاء قبلونكی او مشكل حل كونكی د الله نه سيوا بل څوک دی؟ )).

دا يو څو دلائل دي کنه ددي د بيان لپاره په قرآن او سنت کي ډير زيات دلائل موجود دي چې د هغو په لوستلو سره به هيڅ يو ذي شعور او عقلمند د الله نه سيوا بل هيڅوک حا جت پوره کونکي او مشکل حل کونکي ونه ګڼي.

دا خو داسي واضحه حقيقت ده چې د مکي مشرکينو ته هم ددي د اقرار نه بغير بله چاره نوه .

په قرآن کريم کي ډير ځايونه الله تعالی د مشرکينو دا اعتراف او اقرار ذکرکړی، که چيري د يو بزرګ قبر ته تلل او د حاجت پوره کولو لپاره اواز جائز واي نو د الله تعالی تر رسول ( صلي الله عليه وسلم ) لوي بزرګ په دنيا کي بل څوک کيداي شي؟ حال دا چې په صحابه کرامو ( رضي الله عنهم ) کي يو صحابي هم داسي ندي کړي چې هغه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم قبرته تللی وي او هلته بې خپل حاجت غوښتی وي.

که چيري دا کار جائز واي نو صحابه کرام، خصوصاً خلفاء راشدين ( رضي الله عنهم ) په خپل دور خلافت کي د ډيرو لويو لويو مصيبتونو سره مخامخ شوي، هغوي به ضرور د رسول الله ( صلي الله عليه وسلم ) قبر ته راغلي وای؛ او دابه بې ويلي وو چې د الله رسوله! موږ ته دعاء وکړه.

هو!! چې يو کس په رشتيا نيک او صالح وي او هغه ژوندی وي نو دهغه څخه ( پدي ډول ) دعاء غوښتل چې ماته دعاء وکړه ؛ جائز دي،او پدي کي به هم ددي نيک شخص څخه ( د حاجت پوره کولو) غوښتنه نه کيږي؛ بلکه د هغه نه به دا وغواړي چې زما د بهترۍ او کاميابۍ لپاره دعاء وکړه. [ع ــــــع،مجلة الدعوة مئ \١٩٩٥ء ].